# اوښکې
# او
# سکروټې



اسدالله زمري

# اوښکې او سکروټې



د اسدالله زمري څو شعرونه







۱۳۶۶



# او ښکې سکروټې


داسد الله زمری د شعرونو لمړی مجموعه

د پښتی طرح : سمیع مسعود

ګڼه : ۱۳۷

تیراژ : ۲۰۰۰ توکه

د چاپ نیټه : د ۱۳۶۶ کال د ثور میاشت

د چاپ ځای : د دولتی مطبعی مانوتایپ ـ کابل

# ددې مجموعې شعرونه

لطفاً د( ٥٠ )مخ په لمړی خط کی د( کارګر) کلمه په(بزګر) تصحیح کړی

# دانقلاب په لاره

چې د مظلوم او ښکو ته او روانه خلی

له هغه زړه څخه خو سکو رښه دی

چې دوطن لپاره نشي قربان

دهغه تن لپار گور ښه دی

چې ددښمن په سر سو رتندر نشي

هغه بې ننگ سر په پيغور ښه دی

چې يکې لو ړفکرو نه ځای نلري

هغه پوچ سر په نیزه سپور ښه دی

دانقلاب په لارچې ونه ځغلی

دمرگ کوهی کې تل نسکو رښه دی

کابل - ۱۳۵۷/۶/۲

# پا ریدلی احساس

۱

یو احساس دی پا ریدلی زسا زړه کی
لکه روح چی ځغلیدلی وی په سړه کی
را کوی راته غرو رنه شهپرونه
تیتوی دخیال پروازنه سی لو ړ غرونه
دستی ښې سی خو ځوی په تن کی
و ریتوی سی په لمبو او په خو ږلن کی
بیخو دی ته سی را کاږی له خپل ځان نه
جام را ښئی بیلوی سی له جهان نه
دژ وندون خو اته را کاږی سی مړی هیلی
و ر کسوی و رته زلال دخو ږی مینی

لقمان ـ کابل لاړه ـ ۱۵ ر۱۲ ر۵۶

# قربا ني

که سی وطن سمبسو ر په خپلوتو دو وینو نه کړ
لکه اتر نګک دخپل زړګی په وینو رنګک خو بهشم
کـهسی و نه ساتـه دسـر په بیه دا انقلاب
یوه وړوکی قرباني ددی غو رځنګک خو بهشم

کابل - ۲۳ر۳ر۵۷

# د پسرلی تلوسی

زه په خزانو هلو نو کی بهارو ینم
سپیرو ایرو لاندی پټ شوی سور انګارو ینم

څه که د زړو پهشانی پانیورنه ورژ یدی؟
بیائی نو دو باندی، ژوندی زړو نه قطارو ینم

چی خوسره و زغمی تیری اوزور زیاتی د منی
هو سره په وینو ئی ښایسته بیالاله زارو ینم

چی ئی پیاوړی وی نشه د زورزیاتی څوانی کی
زړ پری غالب لکه خزان دسرګ خمارو ینم

که هرڅه راشی په ګلشن، ترینه سپیره داکښی جوړ
بیا هم پهشوق پکی مشغول مدام سلیارو ینم

رنګین بهارته تلوسی دهر یوه زیاتی وی
په دردیدلو دخزان کی خاص تلوارو ینم

د پسرلی پهسرهشفق کی بهغوغاکړی جوړه
دتوروشپو زخمی بلبل چی ناقرارو ینم

الینګار - لغمان

۱۳۵۶

# ساقی‌ته

ساقی پیالی را ، چی تو بی ماتی کړو
لاسونه را ، چی زولنی ماتی کړو
مستی کی ورانه‌دزاهد خونه کړو
راکه چی‌پوچی‌عقیدې ماتی کړو
یولیونتوب راکه‌چی پری پری کړم
لوی همت راچی‌جیلخلنی‌ماتی کړو
اوروزه پوری کړه په‌تورو سغزو
مشعل راواخله چی‌تیاری ماتی کړو
راچی غمجنو ته ښادی جوړه کړو
راچی غمجنی‌زمانی‌ماتی کړو
راځه چی نوی سرودونه سر کړو
زاړه سازونه ترانی ماتی کړو
راځه‌چی‌تولو ته بزمونه‌جوړ کړو
راځه چی تنگی میخانی ماتی کړو

کابل - ۱۹ر۱۰ر۵٦

## سرتیر مین

کمی سر لاړشی ستالپاره دچړو په خوکو

شمه سوری سوری سل ځایه دبرچو په خوکو

ستاله یوی تیږی، یو بوټی نه‌به‌تیر نه‌شمه

زه یم مین وطنه ستا ددنگو غرو په خوکو

کابل - ۱۳۵۶/۶/۲۲

# دسترگو هنر

زړه سی و یلی شی له‌سینی تو د نظر ته
دکنگل په خیرچی ایښی وی سره لمر ته
چی هم سی‌دی ، هم نیشه او هم خمارده
یم حیران زه دهغو ستر ګـو هنر ته
دنظر په غشـو ښکار کوی د تیو لو
هو سیری زمـا زړه هم دی لښکـر ته
چی ئی تیر دی د ښو کمان دو ریځو
څوک به ځنګه تری زړه پټ کاندی سپر ته
په‌یوه رپ کی دزرو زړونو ښکار کړی
تول حیران شـی د داهسی باز، وزر ته
کاشکی‌یاد زړه احوال له سترګو اخلی
چی تپیری ئـی دیـا راتلـو خـبر ته
او ښکی نه‌دی دازما دزړه تو تی دی
چی ئـی ښیمـه د نـو رو زړو حذر ته
پر هارو نه ئی له شمیره دی و تلی
چی سی و نیوه خپل زړه دعشق خنجر ته
دانسان په‌صورت ښکلی ده‌له حورو
نسبت و ر ئی کړم پری او که بشر ته ؟

کابل - ۲۰ ر ۱۱ ر ۱۳۵۶

## زمااوښکې

دغمواو رایشولې دی ، تو دی دی

لەزخمی زړه بهیدلی ،ځکه سری دي

چې زما د ترخه ژوند ترجمانی کړی

زما اوښکې ، ځکه سو زنده لمبی دي

کابل ـ لغمان لار ۲ر۷ر۱۳۵۶ ـ

## د هیلو روح

چې د وصل شیرین خیال سی زړه ته را شي
تیاره شپه سی دژوندون رڼا رڼا شي
تخیل ته سی رنګین باغونه کم شي
تفکر را ته د سره شفق بریښنا شي
احساسات می توفاني شي په وجود کې
تو له وینه سی رګو کې په نڅاشي
ارمانونه سی راویښ او بیا ژوندي شي
امیدونه، سی امید ته په خندا شي
ته دده دژوند بقاء ده هیلو روح ئې
د (زمری) وجود دې ټول له تا فداشي

لغمان - ۱۳ر۱۲ر۱۳۵۶

# ته!

ته زما سپینه سپوږمی ئی ته زما دسترگو تورئی
ته سی ښکلی ښاپیری یی ، ته زما د مینی شورئی
ته زما دزړه کعبه یی، ته سی ښکلی الهه ئی
ته زما د زړه بوته ئی ، ته زما د هیلو کورئی
ته زما درنځ دوائی ته زما دژوند بقائی
ته زما د کور رڼائی ته زما د مینی اورئی
ته زما رنگینه خیال ئی، ته زما د مینی پیال ئی
ته زما د شعر جلال ئی ته زما د سجدی لورئی
ته زما تل تلوسه ئی ، ته سی مسته ولوله ئی
ته سی دژوند ترانه ئی زخمی زړه ته سی ټکورئی
ته زما زړه ته سلی ،ته سی زړه کی ئی ساتلی
ته د ټولو ښکلو ښکلی، دبدری سکنی خورئی
ته زماشه، ترخنگ راشه ، تو لدمینه او وفاشه
چی نیولی می په سینه ، دخپل زړه دوړو په تورئی

کابل - ۲۹ ر ۱۱ ر ۱۳۵۶

## هیله او سینه

دژ و ندو ن دخو نړی‌سین په‌سیلاب کـــي
دحالاتو دڅپو په پیچ او تا ب کـــي
که‌دهیلی او دسینـــي کشـــش نه‌و ای
او س‌به‌ډوب‌وم‌دنیستـــی په‌تورګرداب کي

۲۳ / ۷ / ۱۳۵۶ - کابل

# د زړه غوښتني

بیارانه ماشوم زړه ستالیدل غواړي

سر ستاقد سوکې ایښودل غواړی

خاندی هوسیږی ستارا تللو ته

نه پوهیږم څه در ته ویل غواړی؟

یا به در ته ووائی رازونه پټ

یا درنه دخو ګیلو کول غواړی

ږیردی ژړیدلی ستاپه هجر کی

او س دو صال تال کی زنګیدل غواړی

یا به در ته وښئی دا غونه خپل

تاهم پهلمبو کی سوزول غواړی

رنګ ئی سو راو ښتی له دیانه دی

بیاهم پته سینه پټول غواړی

۱۳۵٦/۳/۵

پروان سینه کابل

# څوانی ولولی

دځوانو ولولو شور سی، جهان کی نه ځائیږی

دسینی عظمت سی، په آسمان کی نه ځائیږی

پرواز ته دنظر سی دآسمان ساحه ده تنګه

آزادی مفکوری سی په زندان کی نه ځائیږی

بی باکو ارادو سی جوړه کړی قافله ده

دغلهاو رهزن و یره، دی کاروان کی نه ځائیږی

دهځو د سیند موج سی له ساحل سره جنګیږی

خپی دتلو سو سی په توفان کی نه ځائیږی

فریاداو هلهلی به ئی کانه کړی نازولی

دتندر چیغه خاځکی دباران کی نه ځائیږی

هیو نه، وینه، زړه سی دوطن له مینی ډکه دی

دنو رو معشو قو مینه دی ځان کی نه ځائیږی

۲۱ / ۳ / ۱۳۵۶ - کابل - کندهار لاره

# دشونډو په جام کې

دسترګو په سره جنګ کې په جانان وویریدم
د مینې په قمار کې ئې په ځان وویریدم

هر چاراته دیار له بې رحمۍ ګواښونه وکړل
له سره نوم پرې تېر، کله په ځان وویریدم؟

پروا نشته که خلاص شومه له زړه، دیار لپاره
په مینه کې زه کله په تاوان وویریدم

پیغام دخپلې مینې مې دسترګو په لاس ور کړ
که څولې نه خه حاجت وه په بیان وویریدم

قسم د پاکې مینې مې دشونډو جام کې کېښود
حیا مې سلامت کړم په پیمان وویریدم

جفائې په لمبو لمبو کې زه او سینه وسوو
هغه مې وه خطا چه په هجران وویریدم

ویل مې په زړا او سیلو به تسل وکړم
خو صبر که مې څو بې کړ په توفان وویریدم

د مینې محبت شراب مجنون سړی نه جوړ کړی
زه خیر که دسا راشوم په جانان وویریدم

۱۳۴۶/۱۰/۵ - کابل

## دار ز وگانو نغا

راشه‌راشه‌چې دعمر خوږد وران دی
راچې‌وخاندو په مینه‌زمانـی تـه
زړه‌ کې‌یاستادراتللو آرزونـا څــــې
سر دننه‌کړه یو ځل زماکلبې‌ته

چې که یادې د دیدار خوږ نعمت راوړي

دوه اوړه سترګې مې دې پاتې دروازې ته

چې د تا د سرکو شونډو خیال کې ډوب شم

و چې شونډې تږې ناست یم پیمانې ته

دخوږو شونډو وسو ما بوسه کې راکړه

چې مستې که طعنه ورکړم میخانې ته

داخراب زړه مې ستا عشق لره جوړ دی

چې تلاش کړې لیونی تل کنډوالې ته

انتظار کې د جنون راسره مل شو

ستا له دره مې راکاږې ویرانې ته

یو ځل راشه چې په ځای مې خپل قسم کړم

چې مې سر دې خپل ستا تلې نذرانې ته

ټولې هیلې ستا د مینې درناوي ته

شوې له خپلو ځایو پورته میلمنې ته

د زمانه په لوټمارۍ کې هیڅ شک نشته

لاس به واوږد کړي ستا د حسن خزانې ته

۱۹/۹/۱۳۵۶ـ کابل

# ورکه چاره

چاته‌و وایمه زه خپل پټ‌دردونه؟
چاته‌و ښیم دژوبل زړه داغونه ؟

څوک خبر کړمه په راز دخپلی مینی
څوک به وساتی زمادزړه رازونه؟

څوک به‌غوږ کیږدی زمادزړه اوازته
څوک به واوری دغه سوی فریادونه؟

چیری‌و تښتم د خلکو له کترونه
چیرته‌نه‌به وی د مینی پیغورونه ؟

څه‌چاره‌به‌دجنون زماڅوک وکړی
چی سحل دسحبت دی راته غرونه

۳ / ۱۲ / ۱۳۵۶ - کابل

# لعلو نه ا و تکلو نه

په‌لاره دامید کی تکلو نه دی‌پر اتـه
هر گام‌دصحبت کی کړ او و نه دی‌پر اتـه
بلبل په‌شان اغز و باندی که‌زړه سو ری‌سوری کړی
دمینی سرمنزل کی سرهٔ‌گلو نه دی پر اته
دژ و ندخو ږی نغمی‌به‌ئی دشپو په زړه کی ناځی
قیام کی دکارگرو سر و دو نه دی پر اتـه
او لسه‌نورنو باخه دهمت په متومات کړه
پښو ته‌چي دکوم تو رځنځیر و نه دی‌پر اته
لږ ژ رشـه گړ ندی‌شه‌چي دو خت کارو ان تیر یږی
په و روسته پاتیدو کی ډیر دردو نه دی‌پر اته
دنیاته‌به‌دی‌نوی‌ر نگ‌تغییر او بدلون و ر کړی
ستالو ر ځتهٔ یو والی کی رازو نه‌دی پر اتـه
ارام باندی دی‌سه‌ئیر و څه ته‌له‌شو ره‌ډ ک‌ئی
څپو دسمندر کی توفانو نه دی پر اتـه
تیارو که بندیان تکړو دخو بو نو په‌داسو کی
په‌زړو نو او مغزو کی مو لو رو نه‌دی‌پر اته
غریب نه‌دی زمر یه چی د لوږ بر ام خاو ندوی
سینو کی مو له دهنه، سرهٔ‌لعلو نه دی پر اته

۱۸ / ۱۰ / ۱۳۵۶ - کابل

# د و صال پر ا و

پتنګ غو ندې سي سو زې سر ه او ر و نه دی او زه يم

«دغم په تورو شپو کې، ستا يادو نه دی او زه يم»

هيڅ پو ه په کنا ډنشو سه چې و لې ر انه لاړې ؟!

دحسن بنا پيرې ! تل دا سو الو نه دی او زه يم

مجنو ن د شو م د مينې نو چې ته مې ليلا نه شوې

د ټو لو او ښ کتر ې او پيغو ر و نه دی او زه يم

اخر به شمه ډو به، ستا د هجر ان دا و ښکو سو ج کې

ر و ان ئې په مسـتـی څپا ند سيند و نه دی او زه يم

د هر چا وې دا حال هجر کې ؟ خلکو لر مې پو ه کړې

در دو نه، حسر تو نه، حر ما نو نه دی او زه يم

د خو ب او د آر ام ار ز و ، په خو ب هم کو ې نشم

د و صـل انتظا ر ده، شو ګير و نه دی او زه يم

يا ز ړه قر ار و م، ياسې د هيلو سره ژاړم

د تا له لا سه، څير ې ګر يو انو نه دی او زه يم

که ستا د انګيو څه ثا نی پکـی پيدا شـی

سـدا م بنکلـی با غـو نه، سر ه ګلو نه دی ا و زه يم

دخو ږ زړګی آواز، په ټول جهان او رول غوا ړم

هر وخت دسوزاوشور ډک ور یاد ونه دی اوزه یم

چې کله دی په زړه شې، دوصال خوا ړه وختونه

شریک نی دغمو ترخه جامونه دی او زه یم

بل هیڅوک نشته ګرانې! ستا دمینې ټول محرم دی

تو دی او ښکی، څګیروی، ساړه آهونه دی او زه یم

راځه ګرانی زمونږه دژړا او درد محفل ته

دمینې ویرجن کورکی ستا غمونه دی او زه یم

دسر و شو نډو نه جامه دی دوصل شراب غواړم

ټول عمر سی محبوبی دانیاز ونه دی او زه یم

دناز مرور تو ب خندا خرام دنړی سوزی

خو ټول عمر د استاناز، مکیزونه دی او زه یم

په ناز دی رانه و یوړ، زړه دمینې په قمار کی

خو څوسی سرژوندی ده داشرطونه دی او زه یم

څه وخت به ګرانی ستا دخوږ وصال پراوته رسم؟

کاروان سره روان یم منزلونه دی او زه یم

۲۳ / ۸ / ۱۳۵٦ - کابل

# بدرگه

چی لاړی دزړه سره‌نو قرار درسره لاړ

دوصل دجام کیف‌دی شو‌خمار، درسره‌لاړ

پیرزوی دزړه ئه‌وه‌چی په‌خمکه قدم کیږدی

په‌شوق دلاری فرشته‌په‌تلوار، ،درسره‌لاړ

نظرسی ساه نیولی ستاد لاری بدرگه‌وو

دسروا‌وبنکوکاروان سی‌په‌دی لار،درسره‌لاړ

دغوښو سره‌تړو ته‌ سی‌لاگوگل کی شته‌تپیری

خوزړه سی همغه‌وه، چی دلدار، درسره‌لاړ

دتاسره سینه‌کی هیڅ دسینی‌خه‌تاونه‌وه

چی‌بل‌یکی‌داا‌ورکړي، سورانگار، درسره‌لاړ

۲۳ / ۹ / ۱۳۵٦- کابل

# دشاعر خیال

دسیني خدای په خپلو گو تو باندی کښېلی ئی ته

دجهان ښکلو په خدا ئی ځانته منلی ئی ته

په تول مخلوق کی ستاثانی چیری ساو نه لیده

نو ځکه شاعر په ښکلی خیال کی جوړه کړی ئی ته

۷/ ۱۰ / ۱۳۵۶ - کابل پوهنتون

# اشنا شبهه

لکه‌سیلی چی‌تنده، په غرو رغو کی گرځی
هسی دی‌سینه راته‌په‌اند اسو کی گرځی
زمستاد عشق لیونی، شم‌دی له‌خلکو لوگی
ستای‌غمنا نیکلامی‌ستام لیمو کی گرځی
دی‌مست‌نول‌خور که‌وروزدی، که‌تی‌دسیتی‌شوردی
ستاددوستی‌شراب‌تی‌چی په‌زگو کی‌گرځی
ته‌دی آباد اوسی‌تل، ته‌دی آزاد اوسی تل
ستاد لور تیا فکر ونه، دیرو سرو کی گرځی
ستاد ابر بنډو گړی، ستاد بیبل شوی‌وینه
راپاریدلی ښکاری، دسیندځپو کی گرځی
دآز ادی ولولی دوه رو رولی ترانی
دکرلی انگازی، ستاتو رو غرو کی گرځی
یوه آشنایه «شبهـــه» یوه ځلانده دیـــوه
در نائی لمـاره پدی تیارو کـــی گرځـــی

۱۳۰۶/۳/۱۵ - کابل



# ښکه بریښي؟!

دوصال هیله دی، آشنا راته عجیبه بریښي
چې مې خپل ځان راته له هرچا بدنصیبه بریښي
خیر ده که وی زما سپېڅلې مینه، ورته پردی
خو د پارسینه ماته هرچا نه قریبه بریښي
د محبت دلاری هر څه مې په ځان منلي
که څه هم نوروته بې دالاره مهیبه بریښي
دیار د حسن خزانه شوه ځای دسینې زړه کې
خینو ورندوته لاتر اوسه داغریبه بریښي
چاته به ښکاری دلربا، د خپلو زړونو بلا
زما دزړه تبولودردوته خوطبیبه بریښي
که څه هم پیر ئې دی د سینې رقیبان راسره
ماته دحسن په جهان کې بې رقیبه بریښي
دیری کانې ئې په ما کړې دد ښمنو په دود
خو رانه تل دزړګي سر، خو ږه حبیبه بریښي

- ۷ / ۱۱ / ۱۳۵٦ - کابل

# په‌گلونوسور کور

نن دی یادونه راته بیا تازه کیدو کی ښکاری
ماشوم زړګی می پیاله شو قه‌نخید و کی ښکاری
چی دی‌دیاد و ړسه‌خپره‌شی په خزان وجودسی
دهیلو ګل سی‌دزړه‌باغ کی‌غوړید و کی ښکاری
دښکلو سترګو شوخ نظر ته دی‌هوسی‌خجل‌شوی
د تورو زلفو بوی دی څکه‌خپریدو کی‌ښکاری
بیا دخوږو خوږو خبرو خوږسلهم‌چی‌پری ږدی
دخوږ زړګی سوی دا غونه رغیدو کی‌ښکاری
د سترګو ورد زړګی کور به‌په‌گلونوسور کړم
چی‌دآشنا د خیال سیلمه ماته راتلو کی ښکاری

۲۴ / ۲ / ۱۳۵۶ - کابل پوهنتون

# دزلفو په تیا ر و کی

دزړه‌قرار، دبی‌قراره زړه، قراروی‌یوړ
قرارلاځه‌چی‌سی تهول‌زړه‌رانه دلدار ویوړ

دتورو زلفو په‌تیاروکی‌رانه‌ځان و رك شو
ځکه جانان رانه د زلفو په یوتاروی‌یوړ

سیودسینی‌کړم نشه، شوسه پردی له دنیا
خوداخوږحال‌هم دجفا ترخه خماروی‌یوړ

زمادسنیی‌په دنیاباندی‌ئی اوریو ری کړ:
دوصل خیال‌ئی‌ییلتانه ، ظالم لوتماروی‌یوړ

د بوالهوسی هرجائی‌مینی اسیربه نشم
که‌ځه‌هم سرراځخه ستاپه مینه د اروی‌یوړ

۱۳۵۶ - کابل

# پښتنه‌مينه

دز ړه دنياسی له‌غمو ډکه ده
له او سيليو او سلگو ډ که ده
چی بی زساله سلا دی سين شو
اوس ئی لمنه له‌د اغو ډکه ده
خه کړ يدل‌اوسوز يدل دی‌پکی ؟!
سارا دسينی له اغز و ډکه ده
که‌ئی سر لاړشی هم ستنه‌به‌نشی
پښتنه مينه له پښتو ډکه ده
که‌ئی‌په سړ وهيلو صحر اډ که شو ه
بيا هم‌له ډيروارسانوډ کـه ده
خه‌له حيا و رته و يلی نشم
د غه د ر د سنه له‌گيلو ډ که ده
زه ئی او لی ادا سجو ه کړ سه
داله نازونو سکيز و ډکه ده
زه ئی په هيله‌دوفاو م ژ و ندی
داد جفا له سرو لمبوډ که ده
بدبين رقيب به‌ئی‌په‌سترگو و ړو ندشی
د حسن شمعه له شغلوډ که ده

۲۵/۶/ ۱۳۵۶ کابل

# ښکلي خيالونه

چې وينې دې ويده ياد شي راته تور و تورو شپو کې
له سترګو مې خوب ورک شي، شمه ږ وب ښکلو خيالو کې
چې وصل دې را ياد کړم، تو رو شپه را ته ورځ ښکارې
د هجر او ږده شپه شي رانـه تيزه خوشيبو کې
په سترګو چې مې ولګي په خيال کې شوخ نظر ستا
له شوقه ليونى شم، ښکلوم هـوسې ليمو کې
د سرو شونډو غمې چې دې دزړه په ګوتمې کيږدم
له ذوقه په تو پوشي کاشکې واى ديار پنجو کې
قامت چې دې ښکاره کله د هيلو په وچ باغ شي
او بو په شان جارې شي را ته وينه په رګو کې
د حسن تجلا په دې غماز په سترګو و روند کړې
رڼا به سې دنيا کړې راته ښکلو پلـــو شوکــــې
که زيرې را ته و شو چې راځي سې دزړه کور ته
هستي به زيرانه کړم، ږدم به سر ستا قدسو کې

۱۳۵۶/۲/۲۴ ـ کابل پوهنتون

## د مینې پرستش

د سپیڅلې مینې غم شو زما برخه
ځکه لرې رانه تښتي نورغمونه

لیونتوب و رته مهوا ئي داسې عشق دی
چې خام تار په ځیر شکوي تو رځنځیرونه

زه د مینې پرستش آتش پرست کړم
پاک سي نشته که شي بل په ما اورونه

زه ئې دزلفو په حلقو زنګید ل غواړم
قبول کړي سې دي کار کې دي دارونه

سر نه تیریم زه په سینه، داسې هوډ دی
رقیبانو نه به پرې کړمه سرونه

دیارغم کې ژړیدل دنر کارنه دی
په خنداګالم د خوږ اشنا غمونه

دغماز زهره به وچوي که یارمانه !
به سروشونډو د وصال و کړي ستونه

۱۳۵۶/۸/۱۳ - کابل

# اوښکی او سکروټی

ای بی ننګو او ښکو بااثری شی
نوری سی له سترګو لاس، په سری شی
نورمی دښو په خو کسو بی زانګی
لاندی سی تر پښو شی رانه لری شی
رونی چی را ته نه کړی دهجران تورتم
ولی را ته دو سره بی ثمری شی
مه ځاشی بی ځایه سپیرو خاورو کی
جوړ کړی اسیلو نه ملغلری شی
زړه چی سی ستی کړد هجران لمبو
تاسی دی لمبو سره ملګری شی
توروتوروشپو کی سیدزړه په اور
سوی پروانی شی لری بری شی
مه پریږدی یوازی ساغمونو کی
سوو فریاد و ته سی ملګری شی

رو ڼ کړی راته دغه د هجران تو رتم
شمعې شي سکروټې شي ، ښکري شي
یار ته سی د سینې ترجمانی شي
چیغی کړی توفان جو ړ کړی خبري شي
جو ړ ځپاند سیلاب کړی دغما زړه کور
بیاد یار د سینې مجاوری شي
۱۳۵۶ / ۳ / ۳ کابل پوهنتون

# رټلی زړه

چاته وښیمه خپل داغلی زړه
چاته ورکړمه د یار رټلی زړه
څوك به ئې ومني که‌ورئې کړم په مینه
د غمونو او در د وسنلی زړه
هیڅ امید څاته نور دی په ژوندون نکړ
نا امید یو را ته نیم خوړلی زړه
سوی‌سوی‌فریادونه ئې تسلسله دی
سو و هیلو سی په اورنیو لی زړه
د سینې قفس نه غیر ئې بل ځای نشته
له باغونو ، له هرچا شړ لی زړه
ارمانونو په ژړاله ژوند ه‌سوړ کړ
د حسرت تورې بلا ژوولی زړه
ناسراد یو که له ټولو خلکو سوړ کړ
او سیلیو په لمبو سیز لی زړه
زه به څه هغه کوم دا رودرمان ته
د جفا زهر وېخواوژلی‌زړه

۷/ ۱۲ /۱۳۶۵ کابل

# دزمانی د شعر په شورکی.

د خیبر د شپو نکیبین کی نو ی سو زاو نو ی سازدی
لر او بر به پری و یښیږی د اد نو یوخت او ازدی

د ژوند ون په لو رسو یون دی سیر نیو ا فغانانو
حر کت وکړی له ځا یه چی همدا د بقا را زدی

د غیرت په چیغه پاڅی د عمر وارما ن پو ره کړی
د زمان د شعر شو رکی د لمبو په څیر گدا زد ی

ا باسین دی غو رځنگو کی او هلمند په فر یا دو کی :
« خپل ازا د ژو ندون‌ته‌هاند کړی»ښتوته‌ئی‌د انیازدی

سر ه بیاور کړ ی لا سو نه سره یو کلا ندی خپل زړو نه
چی‌ا خته د ځان په و یرکی د یو وا لی سو ، غمازدی

له سر د کو او تو پکو سره رو ږد کړ ی گو تی خیلی
تیر دو را ن نو رنو له تا سو د ربا ب او د شهبازدی

کړ ی په و ینو ئی خر و بی دوطن د ا سپیری د ښتی
چی د عیش اوعشرت باغ ئی په خولو ستا سو ښیر ؛ زدی

۲ /۳/ ۱۳۵۶ کا بل

# د مستي هنر

ساقي دژړو سیوخه اثر لري کنه؟
بسمل زړګي نپارهسي کوثر لري کنه؟
چیوسیزيغمونهراته،روڼسيدزړهګورکړي
دسرومتيو نوتل کي داشررلري کنه؟
چياورسي کړي،لمبهسي کړي،لوګيسي کړيلهياره
دسيني سیکده کي کوم مجمر لري کنه؟
چهمستهسي کړيوينه، کړيرسواسيپتهسينه
پيالو،ستو، کاسوکي داهنر لري کنه؟
چيړوبشمهدسروشونډوخوږوخوږوخيالوکي
ترخو ترخو جاموکي خهشکر لري کنه؟
چيړوبهکړيخپوکيدفراقشوسهزړيسي
دسرو شرابو داسي سمندر لري کنه؟

۶ / ۳ / ۱۳۵۶ - کابل

# تلوسې

سپلنی شم ستاد حسن پلو شوته
تور لوګی شمه دتاپتنو کتوته
محبت دهسی پوخ کړم کړاوو کی
چی په‌شوق ځان غورځوم داورلمبوته
تلوسه زما دزړه ستاحسن او عشق دی
لیونی مدام تلاش کړی لیونوته
ژوندنه‌خوندا خلم چی‌غم دی‌راسره وی
خوشحالی سی دی قربان شی ستاغموته
زه‌دی‌لوئی‌مینی هسی‌شان‌مغرور کړم
چی په‌تیته‌ګورم اوس‌دی‌دنګوغروته
ته‌نازیږی په‌خپل حسن نازولی
زه‌سوزیږم لکه شمعه ستانازوته
که‌خه‌هم‌له‌کبره نه‌ګوری هیڅ چاته
خو یو ځل‌وکړه‌نظردزړه زخموته
ستاد حسن طراوت زما اژ راده
ځکه‌نه‌ئی کړی تمنا هیڅ‌دربدوته

۲۶ / ۱۲ / ۱۳۵۶ - کابل

# دشاعرپه رنگین خیال کی

خدای په خپل عمر لکه تاهیڅ جوړ ولای نشي
دجهان ښکلی په خدائی بل څوک سنلای نشي

په ټول جهان کی دی ثانی چیری ساو نه لیده
دطبیعت سو رلکه تابل زیږو ولای نشي

کلو نه کښنی که یو بل سره سانی او ارژنګ
ستاد ښکلا د سلک یو خط هم رسمولای نشي

تمام عالم که کو ر په کو رو ر پسی وګرځی هم
له تانه ښکلی هیڅوک هیڅکله موندلای نشي

تهدشاعر په رنګین خیال کی جوړه شوی ښکلی
بل څوک د حسن تصور کی هم لیدلای نشي

۱۳۵٦/۱۰/۷ - کابل پوهنتون

## د مینی هادی

د نیا ری شپی په زړګی کی
هره خواته تروږمی وه
تورو دنګو غرو، نه اخوا
دزمان بندی، سپوږمی وه

دی ظلمت ته یوه شمعه
د خپل زړه په اورسوزیږی
چی سوری دقیاری زړه کړی
سربازی کړی او بلیږی

داولاړه پــه غــرور ده
د تیارې سره پــه جنګک کې
یو پــتنګ ، د نور په سینه
ځان‌شریک‌ګڼي دی‌ننګ کې

چې د شــمــعــې رڼائـې شــوه
نوده هم خپــل وزر خپور کړ
چې تیــاره ، رڼــا رڼــا کـــړي
نوئی بــل‌په‌خپل ځان اور کړ

پــه‌ســپــیڅــلـو امیــد وکـــې
دتــیــارو پــه ورکــیــدوکې
ځان ئی‌وسو په سره اورکې
دارزو پــــه جـــســتـجوکې

درنــاپــه‌اورجـــن عــشـق کـــې
ددنــدارغــیــبو کــې ســتــې شــو
دمجنــون دعــشــق پــیـغــور شــو .
د رښــتــیـن ســیـن هــا دی شـــو

۲۸ / ۶ / ۱۳۵۶ کــابل

## د انقلاب لمر

له غرورو او ویاړه ډک دي نن زمونږ د وطن غرونه

په تیارو باندوکې بل شول د هوسا ژوند چراغونه

لمر ختلی د ژوندون دی ټول ئې دي خوشحال شغلونه

په زړو قصرو کې سره شول د تیاره ماښام کونګونه

د ثور اتمه - ۱۳۵۷ کابل

## د تاریخ حکم

دولس له ښښو ساتي د ظلمو نو زولنې شوی
د تاریخ په حکم کوري چې بدلې زمانې شوي
په سپیرو د ښتو وطن سو د گلو نو بهار پیل شو
دولس په زور چې ساتي دلکشا او گنخانې شوي
دهو ساژوندون نغموسود سو دوطن په غر ورغو کې
په مستي مستي خپر یږي جو ړې ښکلې ترانې شوي
دضحاک له شره خلاص شوه دانیستي ځپلې خلک
په نسو نو به ساره شي چې ئې خپلې خزانې شوي
خپلواکې زمونږ نصیب شوه مساوات وطن ته راغی
استبداد له سنګه لاره دړې وړې جیلخانې شوي
۱۲ / ۲ / ۱۳۵۷ - کابل

# د وینو جلوی

تنګه کړه رګونو کې ظلمونو د قیام وینه
مسته ئې کړه زړو کې د ولس د انتقام وینه

ورکې ئې تیارې د استبداد کړلې په سرو جلوو
تویه د خیبر شهید چې شوله په ماښام وینه

وائی خیست کسات له زالوګانو د ولس څښنی
ورک هغه کسان شول چې به څکله ئې په جام وینه

ونو ده افغان ولس نړی ته داپه ډاګه چې :
سیند د نابودی ده هر بادار ته د غلام وینه

تکه سره لمبه شوه په تیارو د استبداد باندی
چا چې وه د او کړې د وطن په ننګ و نام وینه

تندر د آسمان شی په قصرونو او برجو باندی
څوک چې کاندی تویه په خاطر د لوی مرام وینه

۱۳۵۷ - کابل

# د پا خید لو غږ

د استبداد دزندانو نو کنج کی
دزولنو د ما تید لو غږ شو
د سر دارانو هیلی خاوری شو لی
چه د کارگر د پا خید لو غږ شو
زاړه برجو نه سره و لړځید ل
چی دبزگر د خلاصید لو غږ شو
ددی محکوم وطن په تو ر و غر و کی
د ارتجاع د پر زید لو غږ شو
زپلی خلك د اختیار خاوند شو ل
چی د « باغلو » درتلو غږ شو
مظلوم ولسه مبارك شه درته
دنوی ژوند د جو ړ ید لو غږ شو
کابل - ۱۳۵۷/۶/۳۰

## گرم تکل

رایید ارشه‌ای‌و لسه‌چی دژوندگرم‌تکل دی

تلوسی دسره ارماندی ،تو ده لاره سورمنزل دی

ماتدتوری‌ار تجاع شول‌دعمر و نو تور قصرونه

چی‌رنګ زور جهان، زور فکر، زور قسمت‌او زور ازل‌دی

۱۳۵۷/۶/۳۰ - کابل

# داحساس لمبه

دمینی خدای سی ئی د هیلو سی کعبه ته ئی ته
ددی ناسر ادژ و ندد هو ساژ و ندفر شته ته ئی ته
ته سی خو انی کی دتاو ده احساس ئی گر سه لمبه
د ار زو گانو ، اسید و نو سی ا سره ته ئی ته
دتاد مینی پوخ نیولی راته تول وجود دی
په تول و جود کی سی او س هر یو ه ذره ته ئی ته
ستاله ذ ر گاه نه بل طر ف په عشق کی نشمه تلای
زما د ژ و ند ا و محبت پا که قبله ته ئی ته
ته سی ئی هر خه بل خه نلرم بی تا نه گرانی
دزړه صدف کی سی حسینه ردانه ته ئی ته

۱۳۵۷/۹/۲۰ ـ لغمان

# دخیری گر یو ان قدر

لیلا د لیونی دینی ، ...رو کی لتوم
رناسی د زړه کو رته په تیارو کی لتوم
که خو ږ عمرسی تیر شو به ترخو کی و اړه خیر دی
زه هم دژ و ندخو اږه په سر و تر خو کی لتوم
پر و انشته که یا ر دی او سیلو نه پروانه کړی
ا ر ا م سی خا نته ستو تو فا نو کی لتوم
مغز و کی سی کرم دشو ر او چیغو شنه تخمونه
د هیلو و رك کا ر و ا ن په فر یادو کی لتوم
که او بشکو اثر ونه کړاو رونه سی پری بل کړل
و جو د ته سی تسل به سر و لمبو کی لتوم
که یا ر راته روغ زړه ببیرته توټی توټی راواستاو
رضا سی د جا نا ن د زړ ه تو تو کی لتوم
په خه به کړی گیله له سانه بری سی پردی سلگرو
د خیری گر یوا ن قد ر لیو نو کی لتوم

۱۳۵۷/ ٦ / ۱۱ کابل

# دبی کوروکور

دا یاغی سستر، سست سیندونه د اسغرو ره د ننګ د ننګ غرونه
د اله و یاره د که خاوره د اسیری او شنه کښتونه

• • •

دا چی کوردی د بی کورو چی سمسور دی په بزګرو
دا چی ګران دی به پنه یانو چی ودان دی په کارګرو

ده نه جاری سروسال شه دا زمـا ښکلی وطـن دی
له ذری به ئی تیر نه شم «را ته ګران دی زما تن دی»

۱۲ / ۳ / ۱۳۵۷ -
کابل - لغمان لار

# شعر: د رازونو محرم

پټ راز د تاد عشق خپلو شعرونو سره وایم
بل څوك ئی لایق نه دی له دردو نوسره وایم

مجرم ئی په دنیا کی بل څوك نشته بی له د وی نه
د خو بزرگی حالونه له غمونو سره وایم

ښکلادعجیب شورږدا په ټول وجود کی جوړ کړ
کیفیت د دی جادوله فریادونو سره وایم

هر یاد دی پسرلی دی چی راځی په ډیراوو هیلو
یادونه د مدام له سروګلونو سره وایم

یوځل د خیال په شانی ته هم را شه زما ځنګ ته
ترڅو به داارمانونه له خیالونوسره وایم ؟

سوزیدنه ویلیدنه تل ستا په تمنا کی
آرزودی دوصال له شوګیرونو سره وایم

۱۲ /۱/ ۱۳۵۷ - کابل

# سینه‌څه‌ده؟!

دا نسان د احساساتو تلوسی دی
غوریدو ته دا سید خوږی ورسی دی
د ښکلاء د جوړو لو شهکاری ده
گرسی هیلی هستول ، تودی اسری دی
د خوندو نواو رنگونو معرکه ده
انتظار کی له خوندو ډکی سزی دی
دعیسی د زړگی را زدی پکی نغښتی
د ژوندون د سازشیرینی ترانی دی
تلوسی دی د جنون ښکلی جهان ته
د سینی د زړه پیاوړی ولولی دی
شوردی،سوزدی،د زړو سیوسستی‌ده
د زاهد په زوړایمان سری زلزلی دی

۱۱/ ۱۰ / ۱۳۵۷ ـ کابل

# نامرادی هیلی

راڅه گرانی له غمه کویا دو ته‌خوراڅه
د عشق دنا کام عمر سوزیدو ته خوراڅه

وفاته خودی ونه کړ تکل هیڅ دراتللو
پخوا په شانی کله ناکرد و ته خوراڅه

پو هیږم چې‌لیدی دی د خندا شپو کی نشم
ژاړته اودی سو و فریا دو ته خوراڅه

تر څو به دی زه سینه په‌سروگلز ما تو سه
په سینه کی شکید لو گر یوا نو ته‌خوراڅه

ناسرادی ستا له سینی هدیری ته‌دی روانی
ناتر سی اوس د هیلو جنازو ته خوراڅه

۲۳/۶/۱۳۵۷ - کابل

# دتاریخ زده کړه

هغه کارگر چې به ئې دبل په څمکه
هر څه په زوراو ظلم خان ته کرل

اوس دتاریخ معلم زده کړل ورته
غلهٔ دانه او روزی ځان ته کرل

۲/۳/۱۳۵۷ - کابل

# داو ښکو سمندر

دسر و شو نهو په یاد دی‌سره جاسو نه ښکلوم

دسینې لـه مستې دغنرو سرو نه ښکلـوم.

دوصل سر منزل ته به دې کله و رسیږم؟

هجران دی په‌ځا ن تنګ کړ نه‌سر ګو نه ښکلوم

داو ښکو سمندر سی تلوسه لری دوصل

ددی آرزو په پاس ئی‌تل موجونه ښکلوم

د زړه په‌وینو سرو ګلو ته‌درد دسینې وایم

دیار لپاره ئـې خیرې ګریوا نو نه ښکلوم

و زړته‌دغرو رسیا سمانونه هم‌ټیټ ښکاري

دسینـې پـه خاطـر ستـا قدمـو نـه ښکلوم

دزلفو هر یو ول ، زما د عقل زو لانه‌ده

په خیال کې‌ئې په سینه د دارو لو نه ښکلوم.

۲۲ر۲ر۷۵- کابل

# تهاوزه

ستا د حسن عظمت ته چې سجده شوم
عقل پاتې شو له ساده عشق بنده شوم
دو فا په هیله تیرسی شوم له سره
ډک دو صل په پیاوړی تلو سه شوم
تهسی جام، تهسی سیناتهسی سوما شوی
زه ساقي شوم، زه سیخو راو سیکده شوم
د سیین زړه تمناسی مدام تـه ئي
څکه ستاد هیلو خـونه کی دیره شوم
تهسی نمرئي، د امید تیاری دنیاکی
زه د تادپلو شو پـه خـیال ذره شوم
خودی وسـوزم دسینی پـه مجمرکی
هم لوگی شوم، همسکروټه، هم لمبه شوم

۱۳۵۷/۱۰/۲۰ ـ کابل

## فطرت

چې دې وو یسنم د غم سوی فریاد شم
خاطرات سی را ژوندې شی او نا ښاد شم

د فطرت په تقاضا سی زړه ته وایم
زر شه وچوه چې له غمه ئی آزاد شم

۱۳۵۷

# سوی هیلی

ساویل خندا به وی، نازونه، ادا گانی به وی

د محبت جهان له غماو له دردونه ډک وو

سرگردان خیال می لږد شعر ښارکی گرځاوه

چی می کتل له پریشانو تلوسونه ډک وو

د ژوند کاروان می د درست منزل په تکل وواهه خو !

ټول له نیمگړو ارزوگانو، امیدونه ډک وو

د درست عالم زړگی می و سپړه د ښو په اسره

له فریادونو، زوریدنوا و گیلونه ډک وو

ساړه اهونه، سړی ایری دا میدووی پکی

وئی سولی هیلی، یار ښتیاله سرو لمبو نه ډک وو

۱۴ / ۷ / ۱۳۵۷ - کابل

# د ښکلا اعجاز

ای د لوی جهان خالقه پاکه خدایه
د ښکلا اعجاز دی زده کړ تا له چانه
چی هنر، علم او فن و رته حیران دی
دادی څه افت نازل کړ له اسمانه

۲ / ۷ / ۱۳۵۷ - کابل

## دليد و هوس

په ليمو كي سي ښايسته ښايسته رغړيږي

په گوگل کي را ته بيا و رو و رو خوځيږي

اي د ښکلي يار د بيا ليدو هوسه

ښه پوهيږم د جنون خوا ته ځغيږي

۲ / ۱۱ /۱۳۵۷ - کابل

# دښکلوعادتونه

و رتەويل‌سي‌چي :دناز پەپلمه

د يو سيين زړه زوروول نه دي ښه

د هو سو نو د ارضا پەاسره

د عشق ددرو ند توم سپکول نه دي ښه

د خو خير نو هو سو پەتله

دارسا نونو خرخول نه دي ښه

د جفا گانو پە بيبا كە شغله

د خاطر اتو سو زول نه دي ښه

لكه بيرحمه خودفر و شەډيو ه

د پتنگا نو و ريتول نه دي ښه

ترخوچي‌سړه كړي‌دگناه سره‌لمبه

دا حساساتو سپړول نه دي ښه

دبنو لاندي ئي‌نظرو و يل :

كەڅه هم داد رتەو يل نه دي‌ښه

خودي‌خونخوار وښايستەوتە هيڅ

د عاد تو نو پر يښودل نه دي ښه

- ۱۳۵۷ / ۸ / ۳

# د سيني انگار

ستا د ليدلو په اميد کې انتظاردې خوږ
دمحبت په خوږ جهان کې ستا ديداردې خوږ

دتادزلفو په حلقو سې دې خپل ژوند تړلی
په تصور کې ئې قسم چه‌را ته داردې خوږ

له‌تانه لرې زه يوه شيبه قرارنه غوارم
دتاپه څنګ کې دداغلي زړه قراردې خوږ

تو دې‌لمبې‌دې‌وي، سکروټې اوخوږلن‌دې‌وي‌تل
دزړه په کورکې د تو دې سيني‌انګاردې خوږ

په‌سانو و لې‌داژ ندو ن‌دغو سره‌تريخ تير يږي ؟
هيله خوږه، سينه خوږه، پخپله يارد ې خوږ

۹ / ۱۰ / ۱۳۵۷ - کابل

# وحشي هنگامه

ته‌دخواني دمست دوران يوه تو ده تلوسه
دسحبت په لوى جهان کى داسيد ترانه
دژندگى په‌ور که لاره کى څلانده ډيوه
دښکلا ښارکى دوحشي حسن توده هنگامه
ترتخيل او فکر لوړه اسماني تمنا
دلطافت له دنيا پور ته سوزونکى لمبه
په‌ولولوکى دجنون په بوى لړلى سودا
له‌شوره ډکه، په‌مستي دسروشو ابو کاسه
زما دشعر دکاروان دلارى‌ښکلى منزل
دشرافت اود عزت يوه عالي نښانه
دغرور گوتو بيله کړى ئى دنازله کانه
له نزاکت اوطنازى نه جوړه شوى بوته
هميشه‌او سه‌ته‌زماد سپين زړه صدف کى
زماد سيني دجهان شه ښايسته در دانه

۱۳۵۷/۵/۵ کابل

## قسم

ای وطنه تـه زما د سترگو تو رئی
تهٔ‌ی ژوندئی ، ته ‌ئی روح او ته ‌ئی گو رئی
پهٔ‌سر و و ينو به د کړم سمسو رقسم دی
چی ئـی تـه دسیړ نیو نیکو کـو رئی

کابل ۱۳۵۷/۲/۳۱

# هیری نا کردی

تانه که‌ستا کړی وعدی هیری شوی
مانه دوصل تلوسی هیری شوی
دزړه گلونه د هوس وخوړل
در نه سپیڅلی یارانی هیری شوی
خیال ته دی نوی مشغولا کړه پیدا
در څنی تیری خاطری هیری شوی
نغمه دمینی دی بدله شوله
درڅنی مستی ترانی هیری شوی
ساویل صبر به دیره کړم په زړه
چی رانه بیا تولی چاری هیری شوی
فقط له نازه‌سی پسه خنګ تیره شه
که دی زما سوی ناری هیری شوی
سینه شوچی هیر دی کړم بی نیازه یاره
اوس سی‌ستا تولی نا کردی هیری شوی

۱۳۵۷/۵/۲۱ کابل

# زما د وطن سيند

توفانونه ئې لا کم راغلي مست شو رته
کلک بندونه ئې ټينګيږي نه هيڅ زور ته
هرڅه ئې په تلاش کې د افريقا د کړي
چې له ځوړې سې زړه شين دی، ځمه پورته

ننګرهار ـ کابل لاره
۱۳۵۷/۳/۱۲

# د زماني اور

بیا یې خاطرې شوې راژوندې تر خو یادونو کې
بیا دې یې زمانه سوې هغو نه بیا اورونو کې
ویښ یې امیدونه شول د ژوندون خوږې نغمې ته نن
سوزي ارمانونه راته اوس هم حسرتونو کې
ګرځمه سرسام، څېرې ګرېوان او ژړغوني تل
خاوره لېلاند سپیرو دښتو کاروانونو کې
څو ساړه ما غزه پرې څه تاوده کړم د زمان په اور
ورک یم ور پسې د سرو شرابو په جامونو کې
بیا یې ولولې دې پاریدلې د زمان په اور
ګرځې یې د شور نه د کوینه په رګونو کې
هسې به حالت یې صحبت کې دې مجنون ستره
نه ئې شي موندلای څوک په ټولو جنتونو کې

۱۳۵۷ - کابل

# پسرلی‌ته

داد ی بیاراپا ر و لی څه جنو ن دی؟
چې سپیری‌دښتی‌وطن‌ز ه و نېر گلگو ن‌دی
څو انی‌هیلی دی‌په‌ز ړه کی لیو نی کړی
په‌شتاب دلوی‌ار ما ن‌په‌لو ری‌یو ن‌دی
په‌غو ټی دی کړه‌د ستر پر ده خیری
له غیر ته و ر ته گل چې‌جگرخـو ن د ی
د بلبل او دبو ر اد ستی شو ر تـه
له‌حسر ته‌د خزا ن سوی لړ مو ن‌دی
سپینه سترگه د سحر تکه سر ه ښکار ی
لکه و ر ی په لعلو نو دی شبخو ن دی

۱۳۵۷ ـ لغمان

## تومتی زړه

خدایه‌ځنگه به ارام کړم داز خمی زړه

دښکلا پسه‌لمبو سوی اوستی زړه

له هیڅا سره ئی قرار او ارام نشی

داد مینی په لوی‌تورکی تومتی زړه

۱۳/۱۰/۱۳۵۷- کابل

# دارمان هڅه

دملګرو مادتوفانونو په‌دوجو کی‌پر یږ دی

ماد ظالم سره‌په نره‌جنګیدو کی پر یږ دی

دانقلاب‌له‌سرو لمبو نه‌دی‌لوګی کاندی‌سر

که‌ورته‌و نه‌سوم‌نو سږ سی‌په‌ایرو کی‌پر یږ دی

له‌سارام‌سه‌غواړی، خوبسه‌غواړی، خیال‌مه‌غواړی!

مادزمان یه‌پاریدلو ولولو کی‌پر یږ دی

زه‌ددوران‌په‌وزرغواړم‌الوتل‌اسمان‌ته

مادهمدغه لوی‌ارمان په هڅیدو کی‌پر یږ دی

زه‌دردیدلی، خوریدلی، ژړیدلی‌شمه

خوسی‌ولس‌په‌خوشحالی‌او خندیدو کی‌پر یږ دی

١٥/٤/١٣٥٧ - کابل

# د زندان گل

دښکلا په‌ګانه ښکلي سو رکی گل‌دی
چې تری تاو نه‌کوم‌بو رااونه بلبل‌دی

طبیعت دی، دی‌راوستی تو رز ندان‌ته
و رتېرلی ئی پری ورآزاد جهان ته

دآز ادژو ند په اسیدهر سحر ژاړی
دفطرت په حکم لو یه دنیا غو اړی

خپل‌حالت ته‌دزړګی په‌وینو سو ردی
په‌زندان کی غو ړیدلو ته مجبو ردی

خو دبل لپاره‌خاندی ځان‌یی هیر دی
دانسان په ښکلي نو مله ځانه تیر دی

ای دغم‌داو ر په سنځ کی خندان گله
ستاله‌لاری شم قر بان زه هزار ځله

چې هدف دی‌تل دنو رو هو سائی‌ده
زیبائی، انسانی ژو ندداو آزادی ده

۹/۳/۱۳۵۷ – کابل

# زما وطن او خلک

دا یاغی ورېځې — دا ستر سیندونه
دا پلنې دښتې — دا د ننګ د ننګ غرونه
شنې ورشوګانې — شنه ځنګلونه
د ډکه هیبته — لوی ګړنګونه
زړور خلک — سر ښندونکي
توپاني هیلې — ستر غیرتونه
د ځنځیر شرنګ کې — ستړي تنونه
پولادي سینې — خواري ربړونه
رښتینې فکر — سپېڅلي زړونه
دا یې وطن دی — دا خړ کورونه
دا یې دي خلک — لوړ لوړ سرونه

۱۳۵۸/۴/۲۹ - کابل

## دحیا وسواس

ستاله مستو سترګو ځارشه دشرا بو ډك جامونه
په لیدو کې‌دې نخیږی دزړه هیلی امیدونه

داځه و ینم‌نه‌پو هیږ م‌ستالیمو کې څه‌اثر دی؟
دحیاو سواس کې ښوری‌تل دمینی توفانونه

دیاغی نظر اثر دی په فولادو کې نفوذ کړی
راته وښی سپړل د زړه نه‌د عمرونو پټ رازونه

د نظرګرمی‌دی‌ساکی‌دژوندون‌نښی‌پیدا کړی
تری لوګی‌زما ژوندون شه،سپلنی می اندامونه

دوحشی‌حسن‌طغیان‌دی‌رانه‌ورك کړځان‌جهان کې
په کتلو کې دوینم دخوند ونو جهانونه

تل دی‌ساته سادسینی په بیتابه شوخ نظر کی
خوسی ورکی اندیښنی وی‌درپه درمی وی غمونه

کابل ١٣٥٨/٦/٢٠

# دعشق غر و را و دښکلا و ز ر

زن دښکلاد سینی ښار کی بیاتو فان جو ړ کړ
له اسید ونو دی په زړه کی لوی جهان جو ړ کړ
د عشق غرو ر دی دښا یست په وزر جګ ترغرو لاړ
خپل عظمت ته دی د ځا ن په خیر آ سمان جو ړ کړ
ر نګ دی دزړه له و ینوواخیستل خو ندو نه بیانن
په خپل و جود کی دی دخو نداو ر نګ بوستان جو ړ کړ
ستر ګی دی بیاد زړو و یشتلو ته تیاری کړ لی
په سو ری زړه دی د بنو را ته با ر ا ن جو ړ کړ
ماو یل ارام به را ته را کړ ی دو صال پیالو کی
خو تا د و صل خو ږ ساعت په ما هجرا ن جو ړ کړ

۱۲ / ٦/ ۱۳۵۸ - کابل

## ښکلی‌نن او رون سبا

وگرځم وطنـه زړکرته زه لـه تا ځنی

ستاله ښکلی نن نه او د تاله رون سباځنی

تن می‌تانه‌جوړدی، روح هم‌ستا په‌سردی‌ایښی‌ما

ځارمی شه ذره ذره دتن، ستا ارتقاځنی

۱۵ / ۳ /۱۳۵۷ - کابل

۱

# دحیا پر ده کی نغښتی نظر

د مینی شو رمی په نیشو کی نښته
جنو ن می مستو و لو لو کی نښته
ته چی خو شحاله ئی زما ژو ندو نه
ما ته غمو نه په غمو کی نښته
ستا د حیا پرد ه کی نغښتی نظر
ټو لو غو ټیو او غو نچو کی نښته
ستا د و صال خو ږه ا و گر سه هیله
زما د ژو ندپه تلو سو کی نښته
چی می احساس ستا سینه وتخنو ی
د خو ښی شو رسی په پیالو کی نښته
د تاله یاد ه سی سلگری بل خو ك
زما د عمر و رځو شپو کی نښته

۳ / ۹ / ۱۳۵۸ - کابل

# پښتنی سترګی

داسی چی په ژړو باندی شبخون کړی دچاسترګی دی

داچی هر نظر ئی زړه مجنون کړی دچا سترګی دی

داچی دجادو اثر ئی ورک کړله دنیا ځنی

داچی په کتلو کی افسون کړی دچا سترګی دی

داچی په ویشتلو کی دزړونو روغول کوی

داچی تللی روح بیرته راستون کړی دچاسترګی

داچی یادئی تل لکه لیمه دی زماسترګو کی

داچی سیوصال را ته بیلتون کړی دچا سترګی دی

داچې په ګرځش کې ئې آرام زسا و یده ښکاری
داچې سي سکون را ته تیو ل یون کړی د چاسترګې دی
داچې سي دعشق په سوی تن کې نوی ساه پو کړی
داچې سي لحظه دسرګه ، ژوندون کړی دچاسترګې دی
داچې د حیا خمار کې ښکاری تل سرغی مرغی
دا چې ئې مستی جو ړ لوی جنون کړی دچاسترګې دی
داچې دهوس له ګردنه پاکې دی شبنم په شان
دا چې د پاک عشق پسی لټون کړی دچاسترګې دی
دا چې په شوخی کې اعتراف د محبت کوی
دا چې ددوه زړونو پیوستون کړی د چاسترګې دی
د ا دی پښتنې ، د پښتنې پیغلې شهلا سترګې
داسې دښایسته ، ګرانې ، خوږې ، مستې لیلاسترګې

کابل ۱۳۵۸/۹/۳

# زادگاه کوراوگور

داوطن سی دی زادگاه دغه سی کوردی
چی اخیستی سی‌له‌ده د ژوندون شوردی
دی سی‌روح‌دی‌دسرو هیلو په وجود کی
له‌ده جوړسی د زړګی او ښتو زوردی
ده راوبښه ژوندون له خپله ځانه
دی زما دپلارسیرات دی داسی سوردی
ده کی رنګ اخیستی سروسرو غیرتونو
سربښیندنه ئی‌په‌لارئی کی په‌سوډپوردی
ده کی‌لوی‌شوم، ده کی‌ځوان، دلته اوسیږم
دلته مرم به ، فقط دغه زماګوردی

۱۳۵۸/۳/۲۳ - کابل

# دنظر اثر . . .

څه اثر دی د ښایسته و په نظر کی ؟

چی ا رام نه پر یږ دی عقل را ته سر کی

بلوی را ته لمبی تل په سغـزو کی

سو زوی می لکه شمعه په شر ر کی

۱۳۵۷/٦/۱٦ - کابل

# خو اږه غمو نه

دژو ند بقا دیا رغمو نو کـی ده
دزړه قرارد عشق سو زو نو کی ده

خو زه‌و ږسه : دو فا هیله ده بس
بـهـا ر دو صل پـه‌گـلو نـو کـــی ده

سراد : سجده‌ده‌په کعبه کی‌دعشق
ثو اب ئـی تبو ل په طاعـــتو نو کی ده

هیله : دیا ر په نیم نظر کتل دی
خو ښی ئی هـم خو ږو غمـو نو کی ده

تلو سه : یو نظر دیـدا ر دی دیار
ارا م ئی هـم تبو ل پـه دردو نو کی ده

مُکه په‌هجر کی د خو ږ زړه بلبل
دیـا ردیا د پـه فر یـا د و لـو کـی ده

۱۳۵۸/۹/۱۱ - کا بل -

# شوخه‌حیا

سینه مې چې ستازږه کې پیدا شوله
جوړه سې دژوند ورانه دنیا شوله
شولی را تـه هیله، هیله، هیلـه ته
تا ښـنې ـسې ښکلـې تمنا شوله
ټوله را ته سینه، سینه، سینه شوی
ته وی چې را تلونکې دی رنها شوله
روح شوی داحساس پەو یده تن کې سی
ځکه دی ځوانی شوراو غوغا شوله
یاد کې را ته هسې جاویدانه شوی
هر خواه‌ـسی ښکاره د تا ښکلا شوله
ئی زما د عمر او ژوند ون بقـا
خوښـه ـسی دتا شوخـه حیا شـوله

۱۳/ ۲/ ۱۳۵۹ ـ کابل

# غلی غوغا

په زړه کی سی ستاسینه بیا نخیری غلی غلی
تنکی غوټی دهیلوسی غوړیږی غلی غلی
قرار را ته دتاد شوخو سترگو تصور وړی
غوغا ده چی جهان کی سی جگیږی غلی غلی
غوړیږی دی دښکلو ویښتو ولو نه په خه هیله ؟
دزړه دذوق و زړو نه پری بندیږی غلی غلی
په یاد کی دوصال، دشی رنځونه را نه هیرتو ل
دردونه سی هم دم په دم رغیږی غلی غلی
دبخت له بر کته یادتاله ښکلی خو یه
د سینی سپنه و یښه کی جوړیږی غلی غلی

۱۹/۲/۱۳۵۹ - کابل

## خوبنی

لکه گل چې پسرلی ته په خنداشی

دخوبنې او بنکې ئې په سخ و هی سوجونه

هسې زه دتا را تلو ته خوشحا لیږم

په لیمو دشه زما؛ تهول قد مونه

۱۳۵۷/۱۱/۲ - کابل

# ویاړلی انسانان

دوحشت او د ترورسره په جنګ کی
دوطن دربرېدلي مورپه ننګ کی
دخیبراو عبدالرحمن په ګرمه لاره
دخپل ګوند اوسره پرچم دنوم لپاره
پهٔو یاړ نه ئی نوم یاددی په جهان
ستر رښتنی مبارز، اتل انسان
هرو ګړی دولس ئی په نوم و یاړی
هره لو یشته دوطن دخاوری وائی:
جاو یدان دی ، جاو یدان دی جاو یدان
دویاړلی او سوبمن ګوند شهیدان
کابل - ۱۳۵۹/۷/۲۹

# دشهید ویار

د ناسرادیو د توفان په منځ کې

که مې د هیلو پلوشه سړه نه شوه

دسوړ، سوړی تتر په منځ کې

که مې دښه ژوند تلوسه سړه نه شوه

د نیمې لارې د ملګرو ویر کې

کې مې د هغو ترانه سړه نه شوه

د سربندنې د ازمون ډګر کې

که مې د زړه بله ډیوه سړه نه شوه

اوس د وطن د افتخار سمبول یم

که مې دسره ننګ ولوله سړه نه شوه

نوم مې دده د سینې ستوری دی نن

که مې د سړینې هنګامه سړه نه شوه

زه دځوانانو، ځوانیمرګ شهید یم

ځکه مې لویه حوصله سړه نه شوه

۱۳۵۹/۷/۲۷ - کابل

## دسرو سوجونو سیین

ز ه دظلوم دسوو سروا و سیلیو لمبه

ز ه دتوفان دهلهلو او د شورو نو سیین

چی د درد و نواو غمو نو پهاحساس وی سوی

پهسمندرکی‌دارسان پهسرو سو جو نو سیین

۱۵/۴/۱۳۵۷ - کابل

# دجنون بهانه

دعمر تیری یم پیالی را کړی
را کړی بی شمیره پیمانی را کړی
کله‌سا تیری تلوسه ‌ی پ‌ه دی
‌باته خمونه ، خم خانی را کړی
نشته ده نوره حوصله دصبر
دجام دشو نه‌ونذرانی را کړی
وچاوده زړه‌ی دسکوت له لاسه
دسینا خولی نه ترانی را کړی
نشته ده شور او مستی دی مغز و کی
زه جنون غواړم بهانی را کړی

۱۳۶۰/۸/۲۶ - تاشکند

# نه راځی

زړه مې سارانی شو بیا تېر ته نه راځی
عقل مې پردی شو چې مې سر ته نه راځی
زه ئې دجنون او بیدلی سرض کې پریښو دم
یار هم سرو رشو اوس خبر ته نه راځی
مینې مې دنیا په ځان کې ور که کړ له وګوری
داسې لوی جهان مې اوس نظر ته نه راځی
یاد د چا د حسن را سره دی نو ساقی څکه :
شو رد سر و شرابو مې ساغر ته نه راځی
زه په له دنیا نه له داغو نو سر لاره شمه
داغ مې دو صال کله خبر ته نه راځی
ما دعشق خنجر دی تل سا تلی په سینه کې خپل
خو د په مې غماز د جنګ ډګر ته نه راځی
ورراباندی بل کړی او ایری مې ور کړی باد ته بیا
او ښکی د فراق مې که شر ر ته نه راځی

۱۳۶۰/۹/۹ ـ تاشکند

# مسته‌پلوشه

سینه‌سی چې اوښکې او ژړا شوله
پټه سې له زړه ځنې رسوا شوله

وو تـه د مستې پلوشې پـه خیر
وبریښیدم، ښکلې ترې دنیا شوله

سترګې دوفا په نازنیاز بینې شوې
ټوله تلوسـه او تمنـا شـوله

سرئې د یاغي شهرت په‌غرو وخوت
خود مجنون خورښکلې لیلا شوله،

څه ئې هڅوي دلیو نتوب ښارته؟
لاړه اوس دفکر او سودا شوله

۱۳٦۰/۲/۳۰ کابل

## ورکه تمنا

گرځم په غرو را نه لیلا ورکه ده

د غمجن عمر تمنا ورکه ده

د تا د درد چاره به څه وکړمه

چې رانه ځیل د درد دوا ورکه ده

۳/ ٦/ ۱۳۵۷ کابل

## شهید ته

درته دوینو له بها ره‌څور نګونه کرم

دزړه له وینو دی په قبر څوګلونه کرم

په‌خالی لاس‌خو په‌دې‌ك زړه دی‌بیالیدوته راغلم

دتاله شوره په‌سغز و کی‌فریادونه کرم

د تا له سره تیرنه وړم د سوګند و نولمبی

سر و مغز و نوکی بیاستا دیاد او رو نه کړم

له تانه وړم دښار و یدو ته تو دی و ینی دزړه

په خپلو خلکو کی د تا سره خیر تو نه کړ م

د نیا ته وایم په رسا اواز دتا شعرونه

ستاله نامه ته ئی په خلکو کی لحوا کونه کړم

ستا د همت او عظمت د او چت غره له بر مه

د انقلاب تو فا نی سیندکی تکلو نه کړم

په خپلو ینو به یی پالم تل قسم دی په تا

دتا په لاره کی می زه تیول اسیدو نه کړم

ته تل ژوندی ئی مرگ و بر یری ستاله سترنامه نه

خو انتقام ته دی په تن کی حسر تو نه کړم

ستره شهیده ای د لوئی معرکی سنگره

دتا لپاره دد ښمن کو رکی مرگو نه کړم

۱۳۶۰/۱/۲۹ کابل

# ستا په خواکې

تلوسه مې لکه تېرې ستا ليدل دي
د پتنګ په شان دي مخکې سوزېدل دي

په تياروکې د هجران لحکه پاتېږم
چې اميد مې د دې شپې سباکېدل دي

چې خاطر مې ستا له ياده کله خلاص شي
زما حکم پرې وژل او هېرول دي

سر مې نه دی کله تيټ د چا په مخکې
وظيفه مې فقط ستا سجده کول دي

عبادت دنيا کې څه دی بې له مينې
نور همه واره د خلکو غولول دي

نه مې زده شو کله دا چې په تېزو بر کړم
نه مې ومن په د غو چارو پوهېدل دي

تا نه جار شم زه مينې چې دو بود :
راته عشق چې د سر قربانول دي

بې له تا مې واره عمر لکه مرګ دی
تمنا مې ستا په خواکې ژوند کول دي

۱۳۶۰/۸/۲۶ تاشکند

# دژوند ښکلا

مینه دی زما دکور رڼا شوله

مینه دی زما د ژوند ښکلا شوله

مینی دی لوټ راته د زړه راکړ

مینه دی زما د درد دوا شوله

مینه دی زما هستی اوشته دی تل

مینه دی زما د روح بقا شوله

مینه‌دی.زما مذهب او دین دی اوس

مینه دی زما دنیا ، عقبا شوله

مینه کی‌دی وینم دجهان خوښی

مینه دی زما ښادی ـ خندا شوله

مینه که دی راکړه نورخه‌نه‌غوارم

وینه می د تا وه لا د تا شوله

راشه چی دژوند غم په‌خوښی تیرکړو

مینه کی می د څه تمنا شوله

۲۷ر۶ر۳۶۱ کابل







# سری انګازی

و لـو لـی د ی ، تکلو نه ، هلهلی د ی

پار ید لی ا حساسات دی، زلزلـی دی

د مظـلـو مـو، درد یـدلـو ا نسا نسا نـو

ډ ک له زوره د پاخون سری انګازی دی

پاخیدل دی دهدف په لو ری یون دی

د او ړ دی لا ری و هل دی تلوسی دی

۱۳۵۷ - کابل

۱

# دسنگر و نوکور

دا دګړنګونواو دغرو نوکور

د ادتوفانونو، سیلابو نوکور

دا دبنکلا نښه دجنت تو ته

دادو رشوګانو، دګلو نوکور

دادښیر ازي او ابادی ځانګو

دا دبرکت او نعمتو نوکور

دا دګربتانو او زمرو ځالـه

دا دغیرتونو، دننګو نوکور

دا دپړ یالیوهڅوتو د مورچل

دغـه دمیدان اویر غلو نوکور

داد پاتور انو سرباز انو ویار

دادسر ښیندنو، سنګر و نوکور

دامی دی وطن دغه دی پت زما

دا د باغیرته ولسو نوکور

۲۱ / ۲ / ۱۳۶۴ کابل



اسدالله زمری په ۱۳۳۳ هـ ل کال کې دلغمان په ولايت کې زيږيدلی دی، دلشکرگاه دليسې تر تمامولو وروسته ئې خپل لوړ تحصيلات دماستری تر درجې پورې دکابل پوهنتون د حقوقو او سياسي علومو په پوهنځی کې سرته رسولی دی، له ۱۳۵۶ کال راهيسې شعر ونه ليکې؛ او ښکې اوسکړ وتې دده دشعر ونو لمړنی چاپ شوې مجموعه ده .



د ا، د، ج، دچاپ اوخپرونې دولتې کومېټه

دولتي چاپخونه